# هیواد

ورځپانه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
سه شنبه د رمضان المبارک ۴مه ۱٤٤٦ق کال، د کب ۱۴مه ۱٤۰۳ ل کال،د مارچ ۴مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه۵۵۹مه ، پرله پسې ګڼه۶۴۹مه، اتمه دوره


امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | ۴ |
| ایام | سه شنبه |
| تاریخ | ۱٤۰۳/۱۲/۱۴ |
| افطار | ۵:۵۷ |
| عشاء | ۷:۱۶ |
| ختم سحری | ٤:۴۸ |
| آذان فجر | ٤:۵۳ |

## مجاهد:
## د امریکا ولسمشر د افغانستان په اړه ناسم معلومات خپروي

د افغانستان په اړه د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له څرګندونو یوه اوونۍ وروسته، اسلامي امارت په دې اړه غبرګون ښودلی.ولسمشر ټرمپ ویلي وو، چې په افغانستان کې د امریکا پر امکاناتو سمبال د بګرام هوایي اډه ستراتېژیک ارزښت لري، خو دا مهال د چین په واک کې ده، خو د اسلامي امارت ویاند له ملي ټلویزیون سره په مرکه کې ټرمپ د دې څرګندونو له امله د افغانستان په اړه د ناسمو معلوماتو په خپرولو ملامت کړی. ذبیح‌الله مجاهد وایي، اسلامي امارت د بګرام هوایي اډې په اړه له هېڅ سره تړون نه لري او نه هم د کوم هېواد له لوري نیول شوې ده.مجاهد زیاته کړې: ((زموږ غوښتنه دا ده چې د ټرمپ نږدې ټیم باید دی پوه کړي، ترڅو د افغانستان په اړه خپل معلومات کره کړي. ټرمپ ادعا کوي ۳مخ

## د کتاب ارزونې کمېسیون غونډه وکړه




د کتابونو ارزونه او د فرهنګي ارزښتونو پالنه د هر ملت د فکري پرمختګ او علمي ودې لپاره اساسي رول لري. د همدې موخې لپاره د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معینیت د کتاب ارزونې کمیسیون نوبتي غونډه جوړه کړه، ترڅو د کتابونو د ارزونې بهیر ته دوام ورکړي او د خپرونو د محتوا د کیفیت لوړولو لپاره لازمي پرېکړې وکړي.پرون د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معینیت کې د ښاغلي مهاجر فراهي، په مشرۍ د کتاب ارزونې کمیسیون نوبتي غونډه ترسره شوه. دغې غونډه کې د ځینو خبري مسئولینو تر څنګ فرهنګي او د کمېسیون غړو هم ګډون کړی و.غونډه کې د یاد معینیت مرستیال د کمېسیون د لاسته راوړنو، فعالیتونو او موخو په اړه مفصلې خبرې وکړې. نوموړي ۳مخ

## د افغانستان او پاکستان د ټرانزیټي ستونزو د حل په موخه خبرې وشوې



د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې لومړي مرستیال محمد یونس مهمند د خپل کاري سفر په لړ کې د پاکستان د سوداګرۍ فدراسیون له رئیس سره لیدنه کړې او د سوداګریزو اړیکو د پراخولو او د ترانزیټي ستونزو د حل په اړه یې ورسره خبرې کړې دي.ښاغلي مهمند د ترانزیټي آسانتیاوو پر رامنځته کولو ټینګار کړی او له دولتونو څخه یې د سوداګرۍ د جلا کولو اړتیا یاده کړه.نوموړي د افغانستان او پاکستان د سوداګرۍ د کمښت لامل د هېوادونو منفي سیاستونه بللي او د پاکستان د سوداګرۍ فدراسیون له رئیس څخه یې غوښتي، چې د بندرونو د خلاصون لپاره له خپل حکومت سره عملي ګامونه واخلي.د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې لومړي مرستیال د دواړو هېوادونو پر سوداګریزو مالونو د بندرونو بندیدل د سوداګرو لپاره لوی اقتصادي زیان بللی او دا ډول اقدامات یې د نړیوالې سوداګرۍ او ګاونډیتوب د اصولو خلاف بللي.محمد یونس مهمند ټینګار کړی، چې افغانستان غواړي له ټولو ګاونډیو او نړیوالو هېوادونو سره خپلې اقتصادي او سوداګریزې اړیکې د ملي ګټو په پام کې نیولو سره پراخې کړي. نوموړي د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې د هڅو یادونه کړې، چې د افغانستان ترانزیټ له ګاونډیو هېوادونو سره ونښلوي.ښاغلي مهمند د اوسني فرصت ۳مخ

## هلمند کې د مالټو نوي بڼونه جوړېږي

د هلمند د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست له لوري د دې چارواکي وايي، چې په دې ولایت کې د مالټو بڼونو د پراختیا او



ولایت په مرکز لښکرګاه او ګڼو ولسوالیو کې د مالټو ونو د بڼونو جوړولو چارې پیل شوي دي. د هلمند ولایت دکرنې ریاست ترویج په پار د یاد ولایت د والي په هلو ځلو له ننګرهار ولایت څخه ۲۱۰۰ نیالګي راوړل شوي دي، چې دکرنې ریاست د څېړنیز فارم ترڅنګ به انارباغ ، د ولسوالیو قوریه جاتو او ګڼو بزګرانو ته د بڼونو جوړولو په موخه ورکړل شي.دیادې پروسې د پیل پر مهال د هلمند د کرنې ریاست د کرنیزو چارو د آمر احمد محب، د تخمونو د تصدیق ورکولو آمر انجنیر امان الله تسکین، د څېړنیز فارم مدیر عبدالرحمن خاکسار او د ترویج عمومي مدیر قاري مسلم تر څنګ نورو مامورینو هم حضور درلود.د مالټو یاد نیالګي چې اصلاح شوي او د ۷۰۰۷ په نوم یادیږي ، هلمند کې به ورڅخه پیوند اخیستل کېږي او په نارنجو کې به لګول کېږي ترڅو دا ولایت د مالټو له بڼونو څخه برخمن شي. ۳مخ

## پکتیا کې ۱۲ نوي مخابراتي سایټونه جوړېږي

د پکتیا د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ ریاست مسئولین وايي، په بېلابیلو ولسوالیو کې اوسېدونکو ته د مخابراتي خدمتونو د برابرېدو په موخه ۱۲ نوي مخابراتي سایټونه جوړوي.د پکتیا د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ رئیس مولوي نصیرالله هجرت رسنیو ته ویلی ،چې د نویو سایټونو د جوړېدو لپاره یې سروې کړې او د هوا په ګرمېدو سره به یې، د جوړېدو چارې پیل شي.هغه دغه‌راز وویل: یاد سایټونه د سلام مخابراتي شرکت له‌خوا جوړېږي چې دوه یې په زرمت، روحاني بابا، وزي ځدراڼ، مېرزکه، احمدخېل، لجه‌منګل، جان‌خېل، اریوب، ګرده‌څېرۍ او شواک ولسوالیو کې جوړېږي.دی زیاتوي، چې د نویو سایټونو په جوړېدو سره به د لرې پرتوسیمو د اوسېدونکو د مخابراتي خدمتونو برخه کې



ستونزې تر یوه بریده حل شي؛ خو وايي، لاهم زیاتې سیمې شته چې خلک یې مخابراتي خدمتونو ته لاسرسي نه‌لري.ده وویل: ((د دغو سایټونو د جوړېدو لپاره مو سروې کړې خو چې هوا ګرمه شي چارې به یې پیل شي. یاد سایټونه د لسمې پروژې له خوا جوړېږي لګښت او بودیجه یې هم هغوي پورې مربوطېږي.موږ دلته سروې کړې چې هوا ګرمه شي د سایټونو جوړېدو چارې به هم پیل شي.))
د یوشمېر لرې‌پرتو سیمو خلک چې له مخابراتي خدمتونو بې‌برخې دي، د یادو سایټونو په جوړېدو خوښي څرګندوي.
د معلوماتو له مخې روان کال پکتیا کې د خصوصي مخابراتي شرکتونو له خوا شلور نوي سایټونه جوړ او فعال شوي او د انټرنېټ کیفیت د ښه والي لپاره هم کار شوی.

## مولوي صدراعظم عثماني د اسلامي هوساینې موسسې له مسئول سره وکتل

د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال مولوي صدراعظم عثماني د اسلامي هوساینې نړیوالې موسسې له رئیس امري یوکسک سره لیدنه کړې.په دې لیدنه کې د یادې موسسې د راتلونکو پروګرامونو په اړه، چې په لوګر او پکتیا ولایتونو کې به عملي کېږي خبرې شوې.همدارنګه د اسلامي هوساینې نړیوالې موسسې رئیس د کیمیاوي سرو، ۳مخ

## غزني کې سلګونو کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي

د غزني ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وايي، چې د دې ولایت په څلورو ولسوالیو کې د اوبو رسولو د شپږو شبکو په جوړېدو سره د سیمې ۱۴۶۲ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي.د یاد ولایت د کلیود بیارغونې او پراختیا رئیس مولوي محمد قاسم امیني باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت په ناوه، ګیلان، واغظ او مقر ولسوالیو کې د یونیسف موسسې په مالي ملاتړ د ۳۷ میلیونه ۹۰۰ زره افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د شپږو شبکو په جوړېدو



سره د سیمې ۱۴۶۲ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي. نوموړي زیاته کړې، چې د دغو پروژو په پلي کېدو سره به د سیمې اوسېدونکو ته د کار زمینه برابره او ورسره به یې د څښاک د اوبو شته ستونزې حل شي.
د یادونې وړ ده چې د یادو شبکو د رغولو چارې به د یوه کال په موده کې بشپړې شي.

## د شېرمې ناحیې بازارونو کې د نرخنامې د تطبیق څرنګوالی وڅارل شو

د روژې مبارکې میاشتې د را رسېدو په مناسبت د شېرمې ناحیې د مسئولینو له لوري د یادې ناحیې په بازارونو کې د نرخنامې د تطبیق له څرنګوالي څارنه وشوه او سرغړوونکو ته اړینې سپارښتنې وشوې.
د شېرمې ناحیې رئیس مولوي عبدالخالق بدر په دې اړه وویل: په هټیو او لویو پلورنځیو کې د لومړنیو خوراکي توکو له بیو او د قصابیو له فعالیته څارنه وشوه، هغه کسان چې، خپل توکي یې د کابل ښاروالۍ د نرخنامې مطابق پلورل وهڅول شول او چا چې، سرغړونې درلودې لازمې سپارښتنې ورته وشوې. نوموړي زیاته کړه چې، د څارنو په لړ کې فعالیت کوونکو ته ټینګار وشو چې، د فعالیت په سیمه کې حفظ الصحې، د صنفي جواز شتون او د توکو نیټې او کیفیت ته په جدي توګه پام وکړي.

## اسلامي نظام؛ د افغانستان د تلپاتې ثبات یوازینی لاره
۲مخ

## د اسلامي امارت د سرحدي امنیت ټینګښت هېواد ته د ثبات او خپلواکۍ ډاډ
۲مخ

## رمضان ماه تزکیه نفس
۲مخ

## افغاني سرې میاشتې میدان‌وردګو کې ۸۳۰۰۰ ناروغانو ته خدمتونه تر سره کړي



میدان‌وردګو کې د افغاني سرې میاشتې ټولنې ریاست وايي ،چې روان کال یې د دې ولایت د مرکز میدان‌ښار په ګډون د ۹ ولسوالیو ۸۳زره ناروغانو ته بېلابېل روغتیایي خدمات وړاندې کړي دي.د دې ولایت د افغاني سرې میاشتې ټولنې رئیس مولوي عتیق‌الله حماد میدان‌ښار کې خبریالانو ته ویلي، په یاد ولایت کې د شته روغتیایي مرکز او سیارو ډلو پرمټ یې، ۳مخ

## فراه کې د بیو د کنټرول کمېټې فعالیت پیل کړ

د فراه ولایت د ښاروالۍ مسئولین وايي، چې د روژې په مبارکې میاشت کې د بیو د کنټرول او د احتکار د مخنیوي لپاره ۱۱ کسیزه کمېټه جوړه شوې ده.د فراه ښاروال مفتي سردار محمد مرصاد وايي، چې دا کمېټه د اړوندو ادارو په ګډون بازارونه څاري، ترڅو سوداګر له ټاکلې نرخنامې څخه



سرغړونه ونه کړي.نوموړي زیاته کړه، هغه کسان چې خوراکي او غیرخوراکي توکي په لوړه بیه پلوري، د قانون مطابق به ورسره چلند وشي.په ورته وخت کې، د فراه سوداګر او هټیوال د ګمرکي توکو، هټیوالو او ملي سوداګرو د دوامدار څار غوښتنه کوي.د دوي په وینا، د تېرو ۳مخ




# اسلامي نظام؛ د افغانستان د تلپاتي ثبات یوازینۍ لاره

افغانستان په تېرو شاوخوا پنځو لسیزو کې بېلابېل سیاسي نظامونه تجربه کړل، چې هـر یوه یې د بېلابېلو لاملونو له وجې ښـه پایله نه درلوده. د کمونیزم له سـخت دریځۍ نیولې، بیا د تنظیمـي جګړو د ګډوډیو، د بهرنیو تر مستقیم اشـغال لاندې دورې او تر ډیموکراسۍ پورې، هر نظام هڅه وکړه، چې د واکمنۍ یوه نوې بڼه راولي، خو پایله یې د ثبات پر ځای بې ثباتي، د سـوکالۍ پر ځای کړاوونه او د ملي یووالي پر ځای اختلافات وو.

په دې اوږده دوره کې یوازینی نظام، چې افغانانو ته یې د ثبات، امنیت، عدالت او پرمختګ ډاډ ورکړ، اسـلامي نظام و. د اسـلامي امارت په تېره دوره کې، چې له ۱۹۹۶ څخه تر ۲۰۰۱ کال پورې وه، افغانسـتان له یوې بشـپړې کورنۍ جګړې وروسته بېرته سرتاسري امنیت ته ورسېد، قومي او ژبني اختلافات له منځه لاړل، عدالت تأمین شو او ملت د بهرني اشغال له نفوذ څخه پاک شو. دا نظام که څه هم د نړیوالو بندیزونو او فشارونو له امله اقتصادي پیاوړتیا ته ونه رسېد، خو لږ تر لږه یې ملت د جنګ له اوره وژغوره.

اوس، چې یو ځل بیا اسـلامي نظام حاکم شوی، افغانستان بېرته د ثبات په لور ګامونه اخلي. د تېرو څو کلونو تجربو وښـودله، چې اسـلامي امارت توانېدلی، چې د ټول هېواد په کچه امنیت ټینګ کړي، د عدلي او قضایي فساد مخه ونیسي، د پراختیایي پروژو له لارې د هېواد اقتصادي وضعیت ښـه کړي او د تعلیمي نظام د اسلامي کولو له لارې د یوه نسل فکري رغونه وکړي.

اسـلامي نظام د ټولو افغانانو لپـاره د منلو وړ دی، ځکه چې دا ملت له پېړیو راهیسې د اسلامي ارزښتونو پر بنسټ خپل ژوند تنظیم کړی. کله چې په افغانستان کې اسلامي نظام وي، نو خلک له خپلو دیني ارزښتونو سره په آرامه ژوند کوي، عدالت ته لاسرسـی لري او ټولنه له فکري او اخلاقي انحراف څخه ژغورل کېږي. برعکس، کله چې اسـلامي نظام کمزوری یا د پردیو مفکورو ته ځای ورکړل شي، نو هېواد له سـیاسي بحران، اخلاقي فسـاد، اقتصادي سـتونزو او داخلي اختلافاتو سره مخ کېږي.

د اسـلامي نظام د ثبات او پیاوړتیا لپاره یوازې حکومت مسئول نه دی، بلکـې د ټولنې هر فرد، په ځانګـړي ډول د دیني عالمانو، ښـوونکو، اسـتادانو او بانفوذه شخصیتونو مسئولیت دی، چې د خلکو د پوهاوي کچه لوړه کړي. دوی باید ولس ته د اسلامي نظام د ښېګڼو، ۳مخ

# د اسلامي امارت د سرحدي امنیت ټینګښت هیواد ته د ثبات او خپلواکۍ ډاډ

څواک یوسفزی

هېوادونـه هغه مهـال خپلواک او امـن وي، چـې سرحدونه یې خوندي وي. که سرحدونه خلاص وي او هر څـوک پرته له اجازې راتللی او تللی شي، نـو نه یوازې داخـلي امنیت له خطـر سره مخ کېږي، بلکې د بهرنیـو مداخلو، قاچاق او استخباراتي فعالیتونو لپاره هم لاره هوارېږي. افغانستان، چې تل د پردیو د دسیسـو، استخباراتي لوبـو او غیرقانوني تـګ راتګ لـه سـتونزو سره لاس او ګریوان و، اوس یـې د اسـلامي امارت تر حاکمیت لاندې د خپلو پولو ساتنې ته ځانګړې پاملرنه کړې ده.

د یو هېـواد آزادي او ثبات یوازې د داخلي نظم په ټینګښت نه ساتل کېږي، بلکـې د سرحدونو امنیت هم یکې اساسي رول لري.

که سرحدونه خـلاص وي او هر څوک بې اجـازې راتللی او تللی شي، نو دا یواځې د امنیتي ستونزو سـبب نه ګرځي، بلکـې د هېواد خپلواکـي هـم تر سـوال لاندې راولي. افغانسـتان، چـې کلونه د پردیو مداخلو، اسـتخباراتي لوبو او قاچاق له سـتونزو سره لاس او ګریوان و، اوس یې الحمدلله چې د اسـلامي امارت تر واک لاندې د خپلو پولو د سـاتنې لپاره جدي اقدامات کړې دي.

اوس نه څوک د «اشتباه» په پلمه پولې تېرولی شي، نه قاچاقبران په اسـانۍ خپل کار ته دوام ورکولی شي او نـه هم اسـتخباراتي کړۍ کولی شي چې د افغانستان له پولو ناوړه استفاده وکړي.

اسلامي امارت د سرحدي ساتونکو لپاره نه یوازې قوي تجهیزات برابر کړي، بلکې د هغوی د مسـئولیت احسـاس یې هم لوړ کړی، ترڅو د هېـواد دروازې یـوازې د قانوني مسافرو پر مخ خلاصې وي.

اسـلامي امـارت درک کړې چې سرحـدي امنیـت د مـلي ثبات، اقتصادي ودې او سیاسي خپلواکۍ لپاره حیاتي ارزښت لري. له همدې امله، سرحدي ځواکونه یې مجهز کړي، پیـاوړي تدابیر یې نیولي او د غیرقانوني فعالیتونو مخنیوي ته یې جـدي تمرکز کـړی دی. اوس د افغانسـتان سرحدونـه یوازې د قانوني اسـنادو لرونکو ته خلاص دي او هر ډول مشکوک حرکت په چټکۍ سره څارل کېږي.

په تېرو څو لسـیزو کې، د بهرنیو ځواکونـو شـتون او د دوی د ملاتـړ لرونکې ناسـتې اداري نه یـوازې په سرحـدي امنیت کې د افغانسـتان د ناتوانۍ سبب شوې، بلکـې ترهګـرو ډلو تـه یې هم پـراخ فرصتونه ورکـړل، چې له دې لارې یـې د خپلـو فعالیتونو پراخولو تـه ادامه ورکـړه. د بې امنـۍ او سرحـدي کمزورتیا له کبلـه، افغانسـتان د ترهګـرۍ، قاچاق او بهرنیو ګواښونو له خطر سره مـخ و. د کونړ ولایت یې یوه غوره بېلګه ده، چې په اوسط ډول یې هره ورځ تر یو سـل او شپیته د راکټ مرمۍ په خپله سـینه کې خوړلې او دغه وضعیت نه یوازې د هېواد امنیتي وضعیت کړکېچن کړ، بلکې د خلکو ژوند یې هم له سختو ګواښونو سره مخامخ کړ. په دې توګه، د هېواد د سرحدونو د ناتوانـۍ له کبله، افغانسـتان د ترهګرو او غیرقانوني فعالیتونو له پراخېدو سره مخ و، چې د خلکو او د هېواد د ښمنیو لپاره یوه ستره ستونزه جوړېده. دغه وضعیت نه یوازې د خلکو د ژوند لپاره غمیزه ګرځېدلې وه، بلکې د افغانستان د ملي حاکمیت لپاره یې ستر ګواښونه هم ایجاد کـړي وو او د ترهګرو ډلو په مرسته د هېواد د سرحدونو د کنټرول لپاره بهرنیانو ته په پراخه کچه زمینه برابره شوې وه.

خو اوس الحمدلله چې د اسلامي امـارت د حکومت په راتګ سره افغانستان د خپلو سرحدونو د بشپړ کنټـرول او امنیت په لـور روان دی. د اسلامي امارت په حکومت کې، د سرحدي امنیت ټینګښـت یو اسـاسي لومړیتوب ګرځېدلی دی او د هېـواد د مـلي حاکمیت د سـاتنې لپاره اړین ګامونه اخیستل شـوي دي. د دې اقداماتو په پایله کې، افغانستان د خپلو سرحدونو د بشپړ امنیت ترلاسه کولو لپاره اړین تدابیر نیـولي دي. د دې تدابیرو په نتیجه کې، د افغانستان سرحدونه د ترهګرو ډلـو او قاچاقبرانو له فعالیتونو څخه پاک شـوي دي او د هېـواد په ټولو سـیمو کې د ملي حاکمیت د بشـپړ ټینګښت لپاره پراخ ګامونه اخیسـتل شوي دي. د اسـلامي امـارت حکومت په دې برخـه کـې د سرحدي امنیت ټینګښـت ته ډېره جـدي پاملرنه کړې، چې په پایله کې د افغانستان امنیت یـو پیـاوړی وضعیت ته رسېدلی دی.

د اسلامي امارت د حکومت له خوا د سرحدونو د بشـپړ کنټرول لپاره مختلف اقدامات ترسره شوي دي، چې د هغو له ډلې یې د ترهګرۍ ضد جـدي مبـارزه او د قاچاق د مخنیوي لپاره ځانګړي تدابیر نیول شوي دي. د افغانستان د سرحدونو د امنیت د ټینګښت لپاره، د اسلامي امارت ځانګړي امنیتي ځواکونه جوړ شـوي چې په هېـواد کې د ټولو سرحدونو پر امنیت د مستقیم نظارت لپاره فعالیـت کوي. د دې ځواکونـو له لارې، افغانستان د خپلو سرحدونو د بشپړ ساتنې لپاره یو قـوي دفاعي سیسـتم رامنځته کـړی دی. دغه امنیتـي ځواکونه د ترهګـرۍ، قاچاق او د هر ډول غیرقانوني فعالیتونو د مخنیوي لپاره ځانګړې عملیـات ترسره کوي او دا د هېواد د ټولو سیمو د امنیت په لاښو کولو کې مهم رول لري. د دې عملیاتو په ترڅ کې، د افغانسـتان په ټولـو سرحدونو کې د سـولې او امنیت لپـاره ډېر جدي ګامونه اخیستل شـوي دي، چې د هېواد د ملي ثبات، پرمختـګ او د خلکو د امنیـت د ټینګښـت لپاره حیاتي اهمیت لري.

د دې ترڅنګ، اسـلامي امارت د قاچاق د مخنیـوي لپاره ځانګړي ګامونه اخیسـتي دي. د نشـهیي توکو، اسـلحې او نورو غیرقانوني توکو قاچاق په تېرو وختونو کې یوه لویه ستونزه ګرځېدلې وه، چې د هېـواد سرحدونه د ترهګرۍ او قاچاقبرانو لپاره د فعالیتونو په یوه وسـیله بدل شـوي وو. خو اوس الحمدللـه د اسـلامي امـارت په حکومت کې، د قاچاق د مخنیوي لپاره په سرحدي سـیمو کې کلکه څارنه روانه ده.

د دې تدابیـرو پـه تـرځ کې، نه یوازې قاچاق کم شوی دی، بلکې د سرحـدي ځواکونو لـه لورې د قاچاق شبکې چې په تېرو وختونو کې پراخـې شـوې وې، اوس په جـدي توګه ځپل شـوي دي. د افغانسـتان حکومت په سرحدي سیمو کې د قاچاق د مخنیوي لپاره یوه پراخه ستراتیژي رامنځته کړې، چې له هغې څخه په اسـتفادې د هېواد لـه ټولې خـاورې څخه د غیرقانوني توکو، اسلحې او نشهیي توکو د تېرولو مخنیوی کېږي.

اسـلامي امارت دا ژمنه کړې چې هېچاته به اجـازه ورنکړي چې د افغانستان له خاورې یا سرحد څخه د بـل هېواد پر ضـد کوم فعالیت ترسره کړي او د دې ژمنې په عملي کولو کې یې نړیوالـو قوانینو او اصولو ته درناوی کړی دی.

د دې ژمنـې په عمـلي کولو کې، اسـلامي امارت نه یوازې د هېواد د سرحـدي امنیت د ټینګولو لپاره جدي ګامونه اخیستي دي، بلکې د ترهګـرۍ پر وړانـدې یې یوه نوې پالیسي رامنځته کړې، چې له ګاونډیو هېوادونو سره د همکارۍ په لاره کې سـتر ګامونه اخیستل شوي دي. د دې اقداماتو په نتیجه کې، د افغانسـتان د سرحدونو او ملي حاکمیت د ټینګښـت لپاره له ځانګړو ستراتیژیو او پالیسیو سره سره، هېواد د نړیوالـو له لورې د سـیمې د امنیتي وضعیت په بهبود کې هم فعاله ونډه اخیستې ده.

په ځانګړې توګه، اسلامي امارت د خپلو سرحدونو د ساتنې لپاره له نړیوالو قوانینو او اصولو سره سم کړنې ترسره کـوي. دغه کړنې نه یوازې د افغانستان د ملي حاکمیت د سـاتنې لپاره حیاتي دي، بلکې د افغانستان د خپلواکۍ او د هېواد د اقتصادي او ټولنیز پرمختګ لپاره هم مهم رول لري. د افغانسـتان د سرحدونو ساتنه د نړیوالو قوانینو په رڼا کې تـرسره کېږي، چې په دې لړ کې د افغانستان له ګاونډیو هېوادونـو سره همـکارۍ ته هم ځانګړې اهمیت ورکړ شوی دی.

دا ډول همکاري د سیمې د سولې، امنیـت او پراختیا لپـاره هم د پام وړ ده، چې د افغانستان د سرحدي امنیت ټینګښـت یو مهم ګام بلل کېږي.

د اسلامي امارت د سرحدي امنیت ټینګښـت نه یوازې د افغانسـتان د مـلي ثبـات، د خلکـو د امنیت او د هېـواد د پراختیـا لپاره خورا اړین دی، بلکې دا د افغانسـتان د خپلواکۍ ساتنې او له نړیوالو سره د سـولې او همکاریو د ټینګولو لپاره هم حیاتي ګام دی. د افغانستان د سرحـدي امنیـت د ټینګښـت په ترځ کـې، اسـلامي امارت له ګاونډیو هېوادونو سره د همکارۍ په لاره کې هم ۳مخ

# ای وروستیه عقله، چې ته خو لومړی وای!

سـالـمزی

زیلنسـکي څوک و او څه یې وکړل؟ زیلنسکي د دې پرځای چې په حقوقو او سیاسي علومو کې زده کـړې وکړي او د خپل هېواد او ملت د پرمختګ لپاره د خدمت جوګـه وګرځي وار له مخې یې مسـلک ته شا کړه او د یوه فلمي اکټـور په توګه پر ټلوېزیون راڅرګند شـو او د فلمـي ادا کار او د فلمونو او شوګانو مشـهوره څېره شوه. د خـادم ملت ټلوېزیـوني سریال سـتوری و، چې پکې یې د یوه عادي ښـوونکي رول لوباوه او ناڅاپه د اوکراین ولسمشر شو.

پـه ۲۰۱۹ میـلادي کال کې یې دولسمشرۍ لپاره خپله کاندیدا توري اعـلان کړه او د دې لپاره یې د خادم ملت ګوند جوړ کړ. نومـوړی د انتخاباتـو په دویم پړاو کې د ۷۳٪ رایو په تر لاسه کولو سره د اوکراین ولسـمشر شـو. زیلنسکي د ۲۰۲۳ میلادي کال په فبروري کې د روسیې د یرغل پر مهال داوکراین د دفاع مشري وکـړه. هغـه د جګړې پرمهال نړیوال ملاتړ ور جلب کـړ، د لوېدیځـو هېوادونـو نظامي او اقتصادي مرسـتې یې ترلاسـه کړې او دروسـیې پر وړانـدې یـې د مقاومت هڅې وکړې. هدف یـې داو، چې له اوکراین څخـه دفاع وکړي، له لوېدیځـو هېوادونو سره خپلې اړیکـې پیـاوړې او د هغـوی نظامـي او اقتصـادي مرسـتې تـر لاسـه کـړي. څرنګه چې نوموړي په سرکې خپل مسلک ته شـاکړه او په فلمي نړۍ کې یې د یوه ادا کار رول ته ترجیح ورکړه همداسـې د روسـیې په خېټـه کې پـروت، د روسـیې دښـمنانو سره د اړیکو پراختیا او د هغـوی نظامي او اقتصادي مرسـتې را جلبـول بل حماقت دی چې روسـانو ته د سـترګو اغـزی وګرځېـد او لـه ټولو عایداتي سـیمه کریمیـا یې ترې له خپلې خـاورې سره یو ځای کړه او پر اوکراین یې د مستقیم یرغل پرېکړه وکړه. روسـانو



دغه جنګ په ډېـر مهارت مخ ته بېوه او سـتراتیژیکې سیمې یې تـر خپـل کنټـرول لاندې راوسـتې. روسـانو دغه جنګ پروګرامـي اوږد کـړ، چـې بالاخره د فلسـطین او اسرائیلي یهودانـو ترمنځ جګـړه هم تر لبنـان او یمـن پـورې وغځېده او لوېدیځـوال اړ وو چـې په دواړو محاذونـو یعنې اوکراین او فلسـطین کې د هغوی نظامي قـوت او اقتصادي سـتونزې له منځه یوسي چې دغه جنګ تر درېـوو کلونو وغځېـده او پر امریکا او اروپایـي هېوادونو یې مسـتقیماً اغېـزه درلوده. د امریـکا اسـتخباراتي اداره اړه شـوه چې د ۲۰۲۵ میلادي کال لپاره په انتخاباتو کې یو ځل بیا ډونالډترمـپ بریالی او رامخې ته کړي او د اوکراین او روسیې ترمنځ جګړې تـه د امریکا او روسـیې پر توافـق د پای ټکی کېـږدي او هغه سـیمې چې د روسي ځواکونو په لاس کې دي روسـیې ته پاتې شي. په داسې حـال کې چـې په دغـو خبرو کـې د اوکراین فلمـي ادا کار ګـډون هم نه لري، پـه لکونو اوکراینیـان یې پـه خپلو وینو کې ولمبول، په میلیونونو یې له هېواد څخه کډوالۍ ته اړ کړل او اوکراین یې له بشپړې تباهۍ سره مخ کـړ. لکه چې وایي: «ای وروسـتیه عقله، چې ته خو لومړی وای!» هغـوی د خپلو ګټو لپـاره په نـورو هېوادونو کې جنګونه جوړوي، د هغوی معدنونه لوټوي او په دې شکل خپلـه اقتصـادي برلاسي سـاتي ،خـو چې مـوږ نـه پوهېږو، موږ به څوک پـوه کړي. لکه چې پښتو متل دی: «څوک چې ویښ ځان په ویدو کې واچوي د چـا پلار به یې راویښ کړي؟» اللـه دې موږ ته علم او پوهه رانصیب کړي.

# رمضان مـاه تـزکـیه نـفس

ضـربی

رمضـان ماه تزکیـه وطهارت ، مـاه صیقـل روح وروان، مـاه دوری از آتش دوزخ، ماه تسبیح و تراویـح وماه رهسـپاردل ها بسـوی آسـمان ونجات بخش انسـان از قید ومکر شیطان که باعث تقرب ونزدیکی انسـان به خداوندعزوجـل می گردد، فرا رسیده است واین نوید را به مؤمنان می دهد که هر مسلمان در این ماه به اخلاص توبه کند و این مـاه را روزه بگیرد، تمام گناه های یک سـال آن بخشیده می شـود، که بدون شـک این آرزوی هر مؤمن است.

احادیث متعـددی پیرامون ماه مبارک رمضان آمده که می شود از برخی آن ها یاد آور شویم :

» روزه سپریست در برابر آتش دوزخ .

»کسـی که مـاه رمضـان را از روی ایمان و برای حصول اجر و پـاداش روزه بگیرد، گناهان گذشته اش آمرزیده می شود.

»بـوی دهـان روزه دار، نـزد خداوند سبحان از بوی مشک، خوشبو تر است.

»بهشـت دروازه یی دارد که به آن ریان می گویند؛ روز قیامت فقـط روزه داران از آن دروازه، وارد بهشت می شوند.

» هرکـس کـه دروغ گویـی وعمل زشـت را تـرک نکند، خداوندعزوجل نیازی ندارد که او خوردن ونوشـیدن را ترک کند.

» هرکس شـب قدر را به مقصـد ثواب، به سـحر برسـاند. یعنی این شـب را در عبـادت وبندگـی سپری کند، تمام گناه های گذشـته اش مـورد عفو قرار خواهد گرفت.

» سـحری بخورید، زیرا در خوردن سحری ،خیر وبرکت نهفته است.

» خداونـد سـبحان می فرماید: هرعملی که فرزنـد آدم، انجام دهد، برای خودش می باشـد، جـز روزه که مخصـوص من اسـت ومن خودم پـاداش آنرا خواهم داد.

»وقتـی مـاه رمضان فـرا می رسـد، درهای بهشـت گشوده می شـوند، درهای دوزخ بسته می گردد و شـیاطین به زنجیر کشیده می شوند.

» مردم تـا زمانی در خیر، بسر مـی برند که در افطـار نمودن، عجله کنند.

» روزه دار نباید ناسـزا بگوید وعمل شنیع انجام دهد.

» هرکس ،مـاه رمضان را روزه بگیرد و بعد از آن، شش روز از شوال را نیز روزه بگیرد، مانند این اسـت که تمام سال را روزه گرفته است.

»هرکسی روزه داری را افطاری دهد همانند اجر روزه او ثواب می بـرد، بدون آن کـه از اجر روزه دار چیزی کم شود.

» روزه دار، دو بار خرسـند می شـود، یکی هنگامی که افطار می کنـد و دیگـر زمانی که با پـروردگارش ملاقات می نماید، از روزه اش شادمان می شود.

» هرکسـی که یک روز در راه الله (ج) و رضای او تعالی روزه بگیـرد، خداوند عزوجل او را از دوزخ به اندازه هفتاد سـال راه، دور می گرداند.

بنابرین حالا که خداوندعزوجل بر ما لطف ومرحمت نموده که در قیدحیـات بسر مـی بریم، باید این ماه مبـارک را غنیمت شـمرده به عبادات، صدقات و تزکیه نفس بپردازیم تا با بدست آوردن خوشـنودی او تعالـی، رسـتگاری دنیا و آخرت نصیب ماشود. ان شاءالله

# افغان اعلانات

## اعلان داوطلبی

ریاست تدارکات وزارت دفاع ملی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت مینماید تا در پروسه داوطلبی تهیه و تدارک ۷۶ قلم مواد تحکیمات صحرایی ضرورت وجزتامها ی قول اردو های (۲۰۵)البدر(۲۰۷)الفاروق(۲۱۵)عزم از بابت سال مالی ۱۴۰۴

نوع قرارداد:بالمقطع روش(داوطلبی باز داخلی). شماره داوطلبی: وزارت دفاع ملی-۱۴۰۴-اجناس-۰۰۵-۲۵۲۲۰ اشتراک نموده و آفر های سربسته خویش را مطابق شرایط شرطنامه، طبق قانون و طرزالعمل تدارکات بعد از نشر اعلان الی (۲۱) روز تقویمی ارائه نمایند.

آدرس ومدت اخذ شرطنامه:ریاست تدارکات واقع خواجه بغرا مقیم گارد سابقه از تاریخ نشر اعلان الی ۲۱ یوم تقویمی به روز های رسمی از شروع رسمیات الی ختم رسمیات بشکل کاپی/سافت (CD)اخذ و همچنان داوطلبان میتوانند شرطنامه را از ویب سایت وزارت دفاع ملی www.mod.gov.af دانلود نمایند .شماره تماس(۰۲۰۲۶۱۲۰۸۶).

تضمین آفر: بشکل گرانتی بانک اخذ میگردد.

| شماره لات | قول اردوی مربوطه | مقدار مبلغ | واحد پولی |
|---|---|---|---|
| ۱ | قول اردوی ۲۰۵البدر | ۲۰۰,۰۰۰ | افغانی |
| ۲ | قول اردوی ۲۰۷الفاروق | ۲۰۰,۰۰۰ | افغانی |
| ۳ | قول اردوی ۲۱۵عزم | ۱۵۰,۰۰۰ | افغانی |
| مجموعی | | ۵۵۰,۰۰۰ | افغانی |

نوت : تضمین آفر در نسخه اصلی تسلیم داده شود، کاپی وسکن آن قابل قبول نیست. صرف تضمین بانکی قابل تطبیق میباشد. ضمانت بانکی باید مدت ۲۸ روز بیشتر از مدت اعتبار آفر باشد, یعنی مدت ۱۱۸ روز بعد از تاریخ بازگشایی آفرها قابل اعتبارمی باشد.ضرب العجل تسلیمی آفرها و آفرگشائی:از تاریخ نشر اعلان الی ۲۱ یوم بعد، قبل از ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر آفر های دیر رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

محل آفرگشائی:ریاست تدارکات واقع خواجه بغرا مقیم گارد سابقه بلاک آفرگشائی.

نوت:ازداوطلبان محترم خواهشمندیم که بعد از اخذ شرطنامه تماماً موادات آن را مطالعه نموده وهنگام تسلیمی آفر اسناد تقاضا شده مندرج شرطنامه را تسلیم نمایند.

### د بیا خلي داوطلبۍ خبرتیا!

{د ۱۴۰٤ د مـالي کال لپاره د یـوه قلم اوبلن ګاز تهیه او تدارک کول}

شماره- MOPH/NCB/IGICH/1404/G3

{د اندراګاندي د ماشـومانو درملني انستیتوت د تدارکاتو لوی مدیریـت} لخوا ټولو په شرایطو وړ داوطلبانـو ته بلنه ورکول کیږي تر څو د {د ۱۴۰٤ د مـالي کال لپاره د یوه قلم اوبلن ګاز تهیه او تـدارک کولو} داوطلبۍ پروسـه کې ګډون وکړي او د اړونده چاپ شـوي شرطپاڼې یو نقل په وړیا ډول د اندراګاندي د ماشـومانو درملني انسـتیتوت د تدارکاتـو لـوي مدیریـت څخه په میموري یا فلش ډیسـک کې ترلاسـه کړي، دتدارکاتـو قانـون، کړنلارې او پـه شرطپاڼې کـې د ذکر شـویو شرایطو سره سـم دې خپل وړاندیزونه (آفرونه) پـه سرټړلي ډول د خبرتیا نېټـې د خپرولو څخه بیا تـر {د ۱٤۰٤/۰۱/۰۵ نېټې ورځ سه شنبه د غرمې څخه مخکې په ۱۰ بجو د ګران هیواد په زړه کابل ښار کې د وزیر محمد اکبر خان میني لسـم سړک د اندراګاندي د ماشـومانو درملنـي انسـتیتوت لومړي پوړ د غونډو تالار ته وسـپاري} ناوخته رسـیدلي او انټرنېټي آفرونه د منلو وړ نه دي.

د آفـر تضمیـن {د بانـک ګرانټـي ده چه د یو اعتبار لرونکي بانـک ۳۸,۵۰۰ افغاني مبلغ} او شرطپاڼې سره مل د پورته پتې مطابق د روغتون د غونډو تالار ته وسـپارئ، او د آفر پرانېستلو غونډه {۱٤۰٤/۰۱/۰۵} نېټه د سـه شـنبې ورځ ۱۰:۰۰ بجې د غرمې څخه مخکې د اندراګاندي د ماشـومانو درملنـي انسـتیتوت لومړي پوړ د غونډو تالار} کې دایریږي.

### اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

دفـتر رهنمای معامـلات مصلح دارنـده جواز شماره (۴۳۱۷) به اسـم محترم عبدالاحد فرزند عبدالواحـد واقع سرک ۵ پروژه تایمنی ناحیه ۴ موقعیت دارد و میخواهد به سـاحه سرک اول تایمنی ناحیه ۴ شـاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۶۰۳

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسـی نکاح خط شرعی نمـبر ۸۷۶۳۹ به اسم عبدالخالـق فرزند محمد حسـن و محترمه قدسیه بنت سید حسین مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشد.۹۵۹۱

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت عبدالاحد نظری لمتید یک عـراده موتر پلیت ۵۱۴۲۴ ش کابـل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانـی خویش را بعد از طی مراحـل قانونی خرید و فروش بالای عزیز الله فرزند محمد قاسم بفروش رسانیده است.

بناء اشـخاص ادارات و موسسـاتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۰۴

### اطلاعیه فسخ جواز رهنمای معاملات

اسـامی محترم احسـان اللـه فرزنـد عبدالولی ولدیت عبدالهادی دارنـده جواز نمبر ( ۴۱۱۹ ) مـورخ ۱۴۰۰/۱۲/۱۹ متصدی رهنمای معاملات ( احسـان الله رحیمی ) واقع (نیازبیگ) ناحیه (۵) شـاروالی کابل خواهان فسخ جواز خویش گردیـده که بعد از نشر اعـلان رهنمای مذکور فاقد اعتبار قانونی بـوده هر گاه ادارات دولتی و اشـخاص انفرادی بـالای موصـوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشـته باشـند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاسـت عمومی انسجام ، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۵۹۹

### اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

به اسـم محترم مجاهد فرزند نور حسن ولدیت محمد حسـین دارنده جواز نمـبر ۵۱۵۸ مورخ ۱۴۰۲/۳/۲۸ متصدی رهنمای معاملات حسـین زی عمـری واقع بی رحـمان مینه کوچه چهارم ناحیه ۸ شـاروالی کابل خواهان فسـخ جواز خویـش گردیده که بعـد از نشر اعلان رهنمای مذکـور فاقد اعتبار قانونی بوده هر گاه ادارات دولتی و اشخاص انفرادی بالای موصوف ادعای حقوقی به ارتباط فعالیت جواز مذکور داشـته باشـند بعد از نشر اعلان الی مدت یک هفته به ریاسـت عمومی انسجام ، وزارت عدلیه اطلاع دهند.۹۶۰۵

### اعلان تدارکات

موضـوع : اعلان قرار داد ( قلم قرطاسـیه باب ریاست پوهنتون پروان برای سال ۱۴۰۴

شماره دعوت به داوطلبی (۰۰۳-۱۴۰۴)

ریاسـت پوهنتون پروان از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسـه داوطلبی قـرار داد (داوطلبـی قـرار داد قرطاسـیه باب ضرورت شـعبات اداری و تدریسـی ریاسـت پوهنتون پروان) اشتراک نموده و نقل چاپ شده شرطنامـه مربوطه را در مقابـل پرداخت مبلغ (۱۰۰۰) یـک هـزار افغانی از تاریخ نشر اعلان یعنـی بعـد از ۲۱ روز تقویمی الی تاریخ ۲/ ۱/ ۱۴۰۴ در آفرهای خویـش را مطابق شرایط منـدرج شرطنامه بدسـت آورده و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسـته به لسـان دری از تاریـخ نـشر اعلان الـی روز داوطلبی ارایه نمایند.

حصول شرطنامه و تسـلیمی آفرها الی سـاعت ۱:۰۰ بجه بعد از ظهر به تاریخ ۱/۲/ ۱۴۰۴ که آخرین معیاد ضرب العجل تسلیمی آفرها میباشد صـورت میگیرد و آفرهای به تاریخ ۱۴۰۴/۱/۲ ساعت ۱۱:۰۰ بجه قبل از ظهر به دفتر مدیریت عمومی خدمات ، تهیه و تدارکات تسـلیم داده شـود آفرهای ناوقـت رسـیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمین آفر مطابق شرایـط مندرج شرطنامه به شـکل ضمانت و یا پول نقد بـوده معیاد اعتبار آن بایـد ۲۸ روز اضافـه از معیـاد اعتبار یعنی ۱۱۸ روز باشـد ( شرایـط تضمیـن آفـر مطابق به فـورم تضمین آفـر بانکی که در قسـمت ۹ فورم ۵ شرطنامه موجود اسـت باشـد) جلسـه آفرگشـایی در صالـون کنفرانس هـای تضمین کیفیـت پوهنتون پروان در سـاعت ۱:۰۰ بجه بعد از ظهر مـورخ ۱/۲/ ۱۴۰۴ تدویر میگردد در صورت تفاوت میـان تاریخ اعلان داوطلبی و اسـناد داوطلبی تاریخ منـدرج شرطنامه قابل اعتبار می باشد.

آدرس : ریاسـت پوهنتون پـروان بلاک اداری مدیریـت عمومـی خدمات ،تهیـه و تدارکات قریه خواجه سیاران علیا

شماره تماس :۰۷۸۸۲۱۲۳۲۸

### اسرائیلو غزې ته ...

جنایت او په ښـکاره ډول پر اوربند برید )) ګڼلي دي.د غزې د اوربند لومړي پـړاو د تېرې یکشنبه په ورځ پای ته ورسېد او صهیونیستي رژیم یې په لنډ مهاله توګه د راتلونکو شـپږو اوونیو لپاره غځول تأیید کړل. حماس بیا دا طرحه رد کړې او ویلي یـې دي، چې تر هغو به د لومړي پړاو پر غځولو هوکړه ونه کړي، تر څـو امریکایي، قطـري او مـصري منځګړو د دویم پـړاو د پیلېدو تضمین نه وي کړی.

### د ایران د ولسمشر ...

یې اسـتعفا کړې وه. هغهمهال د پزشـکیان لـه مخالفـت وروسـته ښېرته پـر خپله دنده پاتـې شو.ښـاغلي ظریـف د ایـران د بهرنیو چـارو وزیر هم پاتې شـوی او یو له مهمو ډیپلوماتیکـو اشـخاصو ګڼل کېږي.

### مصر د غزې...

ملاتـړ او تمویل هم تر لاسـه کړي څو په ښـه توګه پلي شي. دا په داسـې حال کې ده، چې ټرمـپ څـه مـوده وړاندې د غـزې د نیولو لپـاره څو ځله پرته لـه دې ، چې کوم سـند ولري د فلسـطیني چارواکو له قوله ادعـا وکړه چې د دوی په غوښتنه د غزې بیارغونه کوي او اړتیا ده چـې د غزې خلک نورو هېوادونو ته کډوال شي.د یادونـې وړ ده، چـې اسرائیلو پـر غزې ترانګه شـاوخوا ۱۵ میاشـتو کـې سـختې بمبارۍ ترسره کړې چې لـه امله یې د غزې ۹۰ سـلنه ودانۍ ویجاړې او سـلګونه زره خلک له سر پناه پرته ژوند کوي.

### د اسلامي امارت ...

پراخې هڅې کړې، چې د سیمې امنیت ته د پام وړ ګټه رسوي. همدارنګه، پـه نړیواله کچه، د اسـلامي امـارت د سرحدي امنیت سیاسـت د افغانسـتان د مـلي حاکمیت د سـاتنې او د هېواد د خپلواکـۍ لپاره خورا مهم دی. اسلامي امارت دې ته ژمن دی چې هېڅ ته به د هېواد له خاورې یا سرحد څخه د بل هېواد پـر ضد د کوم فعالیت د تـرسره کولو اجـازه ورنکړي او پـه دې توګه د هېواد امنیت او مـلي حاکمیـت د نړیوالـو قوانینـو او اصولو پـه رڼا کې خونـدي کوي.پـه پایله کې د اسلامي امارت تر واک لاندې د افغانسـتان سرحـدي امنیت د هیواد د ثبـات، خپلواکۍ او ملي حاکمیت د سـاتنې لپاره یو مهم او اړیـن ګام دی. که څه هم پخوا د سرحدونو کمزوري سـاتنې افغانسـتان د بهرنیـو مداخلو، استخباراتي فعالیتونو، قاچاق او د ترهګرۍ له جدي ګواښونو سره مخ کړی و، خو اوس الحمدللـه چې اسـلامي امارت د سرحدونو د ټینګښت لپاره جدي تدابیـر نیولي دي.د دې اقداماتـو په پایلـه کې، د افغانستان پولې خوندي شوې، غیرقانـوني تـګ راتـګ بند شوی او د قاچاق، ترهګرۍ او بهرنیو مداخلو مخه نیول شوې ده. د اسـلامي امارت سرحدي ځواکونه مجهز شوي، د امنیتي تدابیرو ځارنه لا جدي شـوې او سرحـدي قوانین له نړیوالو اصولو سره سـم تنظیم شـوي دي.پـه دې توګه، د اسـلامي امـارت د سرحـدي امنیـت پالیسـۍ نه یوازې د افغانستان داخلي امنیت ته ګټه رسـولې، بلکې له ګاونډیو هیوادونو سره یې د متقابل احترام او همکاریو فضا هم رامنځته کړې ده. د دې تدابیرو دوام به افغانستان ته لا ډېر ثبـات، امنیت او اقتصادي پرمختـګ راولي او هیواد به د یوه قوي، خپلواک او خوندي راتلونکي پر لور سوق کړي.

### افغانستان د ۲۲۰ زره ...

د کال درې سـوه میلیونه ډالره مو بهرنیو هېوادونو ته د برېښنا د ور کـړې په مقابـل کې ور رسېږي. حال دا چې افغانستان د ۲۲۰ زره میګاواټـه لمریزې برېښـنا د تولید ظرفیـت لري، ځکه چې افغانسـتان کې درې سـوه ورځې لمر دی او د یادې اندازې د تولیـد وړتیا لري. ۶۷ زره میګاواټه د بادي برېښنا او ۲۳ زره میګاواټه د اوبو د برېښنا او ۴ زره میګاواټه د حرارتي برېښنا لپاره زمینه برابره ده چې له دې ټولو شـته فرصتونو سره موږ بیـا هم له ګاونډیـو هېوادونو اتیا سـلنه برېښنا واردوو، نو که چېرته پـه یـادو برخو کې کار وکړو، د برېښـنا لـه پلوه مو هېواد ځان بسیاینې ته رسېږي او نـورو هېوادونو ته به هم د برېښـنا د صادرولو وړتیا ولرو. د نوموړي په وینا: افغانسـتان د اوبـو له پلوه یـو غني هېواد دی چې په کال کې ۷۵ میلیارده متره مکعبه د اوبو ظرفیت لري چې د برېښنا په تولید کې حیاتي رول لري. همداشان افغانستان ۹.۶ میلیونـه هکتـاره د کرنې وړ ځمکه لري، همدارنګه اوپا سلنه د افغانستان نفوس ځوان دي چې د کار کولو وړتیا لري، نو د اوبو، کرنیزو ځمکو او د برېښنا د تولید لپاره زمینه برابره ده چې پـه دې باندې کار کول کولای شي د افغانستان اقتصاد وغوړوي.

دی همداشـان وایي:ز موږ یوه ډېره برخه پیسـې لـه بهرنیو هېوادونـو پـه وارداتـو کې مصرفېـږي چـې کولای شـو زراعـت پیـاوړی او کورنیو تولیداتو تـه وده ور کړو، کار ترې واخلـو او خپلې اړتیاوې ترې پوره کړو، نو باید له نورو هېوادونـو واردات راکم کړو او صادرات زیات کړو، ځکه چـې د افغانسـتان د صادراتو او وارداتو تـر منځ اوږد واټن دی چـې کـولای شـو یـادو موضوعاتو باندې کار وکړو او د هېواد اقتصـاد ته پیاوړتیا ور کړو. بله عمـده برخه په کور دننـه د مېـوې او ترکاریو ده. که یوازې بامیانو کې د کچالو کښت ته وده ورکړل شي، ورته سـرې خونې جـوړې شي او د بزګرانو اړتیـاوې پوره شي، نو پـه کـور دننه به د ټولو اړتیاوې پورې شي او نورو هېوادونو ته به د صادراتو زمینه برابره شي. د مېـدان وردګو منـې چې بې سـارې او خاوره یې کښت ته برابره ده، که چېرته هلته زمینه د منـو د بنو‌نو لپاره برابره شي، نو ښه ګټه به ولرې او ورو ورو به ځان بسیاینې ته ورسېږو.

همداشـان د زراعـت او د معدنونو سکټورونه دي چې د اقتصاد پـه پیاوړتیا کې رغنده رول لـري او دا باید اړتیا ته په کتلـو اسـتخراج شي او همدا کولای شي چې افغانسـتان پر ځان متکي کـړي. همدارنګه په تېرو کلونو کې د افغانستان له پاکسـتان سره سـوداګریزه راکړه ور کړه ۴۷ سلنه وه چې پاکستان د سـیاسي موضوعاتو له امله سـوداګرو ته ستونزې پېښولې؛ خو اوس د افغانستان اسـلامي امارت په بدیلو برخو کار کـړی او کـوي یـې چې د اقتصـادي معاونیـت او د سوداګرۍ وزارت رهبري ایران او د منځنۍ ختیځ هېوادونو ته سـفرونه تـر سره کړل تر څـو د افغانسـتان صادراتو ته هغلتـه بـازار موندنـه وکړي او تـر ځنګ یـې پـر بدیلو لارو یـې کار وکـړ چې اوس د پاکسـتان له لورې د لارې په بندېـدو سره نه د هېواد اقتصاد ته زیان رسـېږي او نه سوداګر له ستونزو سره مخامخ کېږي.

د فرزاد په خبره: اوسمهال چې د صادراتـو او وارداتو تر منځ واټن را کم نـه شي او هر کال پـه میلیاردونو ډالـره د بهرنیو هېوادونو د سـوداګرو جېبونو ته لاړ شي، نـو طبعاً چې خپله اقتصادي اغېزه لري. اوسـمهال ډېره سوداګریزه راکړه ور کړه پـر ډالرو ده چـې دا هم خپله اغېزه پر افغانیـو کوي، نو که چېرتـه وتوانېږو چې له داخلي سرچینـو، غنمـو، حبوباتـو، معدنونـو او نـورو څخه ګټه واخلو او کار ورته وکړو، دا به د هېواد اقتصاد ته ګټه ورسوي او پیاوړي به یې کړي. دا هېڅ امـکان نه لري چـې د بهرنیو هېوادونـو پر وارداتـو باندې د خپـل هېواد اقتصـاد پیاوړي کـړو، بلکـې زیـات واردات له هېـواده زیاتې پیسـې باسي او دا پـه خپلـه د صادراتو او وارداتو ترمنـځ واټن زیاتوي. نو د زیاتـو وارداتو د مخنیوي لپاره پـه کار ده چـې په کور دننـه د تولیدونکـو فابریکو ملاتړ وشي او د اوبو او برېښـنا ورکوونکو سرچینو څخه ګټه واخیسـتل شي تر څو کورنۍ بـازار تر خپل پوښښ لاندې راشي او کوم توکي چې هېواد کې دننه تولیدېږي، پر وارداتو یې بندیز ولګېږي او یا پرې په لوړه کچه تعرفې ولګول شي تر څو پـر کورنیو تولیداتو اغېزه ونه کړای شي.

زیارمل هوتک

### د امریکا ولسمشر ...

چې بګـرام د چینایانو په لاس کې دی، حـال دا چې بګرام د اسـلامي امارت د ځواکونو په لاس کې دی. دلته هېڅ مسـلح چینایي نه شـته او نـه موږ له کوم هېـواد سره داسـې تړون لرو. ټرمپ ولې په دومره لوړه سویه غلط معلومات خپروي، باید معلومـات یې مکمل شي؛ ځکه د امریکا په سویه د هېواد ولسـمشر بایـد ډېرې دقیقې خبرې وکړي.»دا په داسې حال کې ده چې د افغانسـتان په اړه د امریکا تګلاره تراوسه نه ده څرګنده شـوې، خو د سیاسي چارو کارپوهان وایي، د ډونالډ ټرمپ په شمول نور امریکایي چارواکي د افغانسـتان په اړه د بې بنسټه ادعاوو حق نه لري.د سـیاسي چارو کارپوه ادریس محمـدي ځاځي وایـي: « زما په اند، د افغانسـتان اسـلامي امارت به هېڅکله هم داسـې پرېکړه ونه کـړي چې د دوی حیثیت تر پوښتنې لاندې راشي د بګرام هوایي اډه د امریکایي ځواکونـو د۲۰ کلن حضور پر مهال له ټولو لویـه نظامي اډه وه .

### د افغانستان او پاکستان ...

یادونه کـړې او دا یې د دواړو هېوادونو د سـوداګرو لپاره په بېلابېلـو برخو، پـه ځانګړې ډول د انـرژۍ د تولیـد او د افغانسـتان د کانونو ایسـتنې، کې د ګډو پانګونـو لپاره یوه ښه زمینه بللې.همداراز ښاغلي مهمند د امـام ابو حنیفه (رح) نندارتـون په اړه د پاکسـتان د سـوداګرۍ فدراسـیون رئیس تـه معلومـات ورکـړې.دا نندارتون هر کال د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونې خونې له خـوا د پانګوالـو د جلب، د پانګونـې فرصتونو د معرفي کولـو او د تولیـدي صنعت د ودې لپـاره د کورنیو او بهرنیو شرکتونو په ګډون په کابل کې جوړېږي.نوموړي د پاکستان د سوداګرۍ فدراسیون له رئیس څخه غوښـتي، چې د پاکستان سـوداګر دې ننداړتـون تـه د ګـډون او له افغان سـوداګرو سره د بېلابېلو سـکتورونو په ګډو پانګونو کـې وهڅوي.د پاکستان د سوداګرۍ فدراسیون رئیس د افغانستان د سوداګرۍ او پانګونـې خونـې لومـړي مرستیال ته ښـه راغلاسـت ویـلي او ډاډ یـې ورکړی، چې د پاکسـتان له اړونـدو دولتي ادارو سره پـه همغږۍ بـه د سـوداګریزو مالونـو پر مخ د بندرونو د خلاصون لپاره هڅه وکړي.نومـوړي د بندرونـو بندیدل د دواړو هېوادونو لپاره لوی اقتصادي زیان بللی.

### د کتاب ارزونې ...

د کمیسیون د فعالیتونو ارزونه مثبته وبلله او د راتلونکو کړنو لپـاره یې پـر لا زیـات تمرکز ټینګار وکـړ.د غونډې په ترځ کې د کمېسیون غړو د ورسپارل شـویو کتابونـو پـه اړه خپل راپوروونـه وړاندې کـړل او د هغو د محتوا، ارزښت او چاپ ته د وړتیا په اړه لازمې پرېکړې وشوې. همداراز، په دې ناسته کې د کتاب ارزونې کمیسـیون کلنـي راپور هم لـه ګډونوالو سره شریک شـو، چې پکې د ترسره شـویو فعالیتونو، لاسته راوړنـو او راتلونکـو پلانونو تفصیـل شـامل و.د غونډې په وروستۍ برخه کې د کمیسیون غړو ته هغه کتابونه وویشـل شـول، چې دې کمیسیون ته د ارزونې لپاره راجع شـوي وو، ترڅـو د راتلونکـې غونـډې لپاره پـرې تفصیـلي راپورونه چمتـو کړي.د کتـاب ارزونې کمیسـیون دا ډول غونـډې د فرهنګـي ودې او د مطالعې د ترویج لپـاره مهمې بلل کېږي. د دې ناسـتو له لارې نه یوازې د کتابونـو کیفیت او محتوا ته پاملرنه کېـږي، بلکې د علمي او فکـري تولیداتو ارزونه هم ترسره کېـږي، چې د فرهنګي پرمختګ لپاره یو مهم ګام ګڼل کېږي. تاج محمد بهار

### هلمند کې د مالتو...

د یادولـو وړ ده، چې د هلمند د کرنې ریاسـت هڅه کوي تر څـو د نویو ارزښـت لرونکو نیالګیـو دکرنـې، ترویـج او تکثـیر په برخه کـې لا زیات کار وکړي.

هلمنـد د هېواد یـو له کرنیزو ولایتونو څخـه دی د کرنیزو چـارو پوهان پـه دې باور دي چې دا ولایت د کرنې او بڼوالۍ لپـاره ډېـرې ښـې ځمکې او مناسبه هوا لري او که ترې سمه ګټه واخیستل شي نو په دې سره به د ډېـرو هغو محصولاتو او مېـوو اړتیا په کـور دننه پوره شي چې له نـورو هېوادونو را واردېږي.

### مولوي صدراعظم ...

د اصلاح شـویو تخمونو وېش او د کروندګـرو د روزنـې په اړه د کرنـې، اوبـو لګولو او مالدارۍ وزارت مرسـتیال ته معلومات ورکـړې.د کرنې او مالدارۍ مرستیال د دې موسسې له فعالیتونو مننه کړې او ټینګار یې کړی، چې د افغانستان ولس د انقلاب او تېـرې جګړې پر مهال له ګڼو سـتونزو سره مخ شـوي، نو ورسره مرسته کول د اسـلامي هېوادونـو دیني او اخلاقي مسئولیت دی.

### افغاني سرې میاشتې ...

شـاوخوا ۸۳زره ناروغانـو ته روغتیایـي خدمـات وړاندې کړې او ۵۸ ناروغان چې د زړه د سـوري ناروغي یې درلوده، د درملنـې لپاره یـې پلازمېنې کابل ته لېـږدولي دي.نوموړې زیاته کړه، د روغتیایي خدماتو د ښـه والي لپـاره یـې ۴۰ نوي رضاکاران روزلي او ۱۲۰ نارینه او ښـځینه رضاکارانـو ته یې روغتیایي کېټونه وېشـلي دي.د میدانوردګو اوسـېدونکي هم خوښ دي چـې د افغاني سرې میاشتې ټولنې ریاست له لورې په دغـه ولایت کـې زرګونو ناروغانو ته روغتیایي خدمات وړاندې شوي دي.دوی ټینګار کوي چې دغه خدمات بسـنه نهکـوي او اړتیـا ده چې لرې پرتو ولسـوالیو ته هم پراختیا پیدا کړي.

### فراه کې د ...

کلونـو په پرتله سـبږ کال بېې کنټرول شـوي او عادي دي.د فـراه ښـار اوسـېدونکي بیا وړاندیز کوي، که دولت د ټولو اجناسـو لپاره ټاکلې نرخنامې خپرې کړې او دوامداره څارنه تر سره کړي، نو بیې به کنټرول شي.

### اسلامي نظام؛ ...

د شرعـي عدالت د برکتونو او د شرعي اقتصـاد د ګټو په اړه معلومات ورکـړې. یوازې په دې توګه به موږ وکولی شـو، چې افغانستان د تل لپاره د ثبات او سوکالۍ خاوند کړو.

په پـای کـې دا بایـد ټولو ته روښانه وي، چې اسلامي نظام یوازینـۍ اداره ده، چې کولای شي افغانستان د تلپاتې ثبات او پرمختګ خواتـه بوزي. اوس د ټولو دنده او مسـئولیت دی، چې د نظام د پیاوړتیا لپاره کار وکړي، د بېثباتۍ هڅې شـنډې کړي او د افغانسـتان اسـلامي هویـت وسـاتي. که مـوږ یو موټی شـو، د شریعت د اصولو پیروي او د اسلامي نظام ملاتړ وکړو، نو هېڅ ځواک به ونشي کولی، چې زموږ هېواد بېرته د بحرانونو لور ته بوزي.

### افغان ورزشکار علي بلال...

له خوا پـه امریکا کې ترسره کېږي، چې د نـړۍ له بېلابېلو هېوادونـو څخـه پیـاوړي ورزشـکاران پـه کـې ګډون کوي.

د یادونـې وړ ده، چې سـړنۍ سیالۍ د فبرورۍ پر ۲۹ مه پیل شـوې وې او پرون، د مارچ پر ۲ یمه، پای ته ورسېدې.

### پروان کې لسګونه ...

په امـارتي روزنتونـو نو کې ۲۲۵ تنه یتیم او بې سرپرسـته ماشـومان په زده کړو بوخت دي.دی وایـي، چـې د کار او ټولنیزوچارو ریاسـت له ټولو امـارتي ادارو څخـه د کار د وختونو څارنه او پلټنه کوي.د یادولـو وړ ده چـې د کار او ټولنیزو چـارو وزارت په ټول هېـواد کې د فنـي او حرفوي زدکـړو ۵۲ فعال مرکزونه لري هر کال نـږدې ۲۰ زره ځوانان فارغېـږي او پـه خصـوصي سکټور او دولتي ادارو کې په دندو ګمارل کېږي.

سمیع الله مومند

### ننګرهار کې پر...

(( موږ له مسئولینو غواړو چې د اوبو په برخه کې له موږ سره همکاري وکـړي، دغه نهر دې موږ ته ۲۴ سـاعته کړي ترڅو زموږ د اوبو ستونزه حل شي.)) (( مـا پـه ۴۰ جریبـه ځمکه کې باغ جوړ کـړي، موږ هم ورسره مـصروف یو او یو څو نورو کسانو ته هم د کار زمینه برابره شـوې او د دې ترڅنګ چاپېریال هم ورسره ښایسـته شوی. ))دا په داسې حال کې ده ، چې د ننګرهـار وادي کرنیز شرکـت د معلوماتـو له مخې، پـر ۷۲ جریبه ځمکـه به د ۵ زره ۳۷۶ په شاوخوا کې د مالټو اعلیٰ بوټي وکرل شي.

### لوګر کې یو جامع ...

د یادونـې وړ ده، چـې له دې وړانـدې هـم د برکـي برک ولسوالۍ په دسـتګیرۍ سیمه کې او د محمدآغې ولسـوالۍ په برګ سـیمه کې دوه سـتر جامـع جوماتونه جوړ او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي.

### له ایران او پاکستان...

د نړیوالو قوانینو او د هیواد له مکلفیتونو څخه سرغړونه بللې او پـه لیک کې یې د کډوالو د ایستلو لړۍ د پای ته رسـېدو غوښتنه کړې ده.

# Hewad Daily

سه شنبه د رمضان المبارک ۴مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۱۴ مه د 2025 م کال د مارچ ۴ مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنير عُزير« بريالى»
موبايل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدير : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحيه، د المپيک څلورلارې، د حضوري چمن ختيځ
کابل - افغانستان
داريکو شمېره: س ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ويب سايت: www.hewaddaily.com
دشکاياتو اوتوزيع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


# اقتصادي کارپوهان: افغانستان د ۲۲۰ زره میګاواټه لمریزې برښنا د تولید وړتیا لري

د اقتصـادي چارو کارپوه محمد طاووس فـرزاد د هېواد ورځپاڼې خبریال سره د هېـواد د اقتصاد د پیاوړتیا په پار مرکه کې ویلي دي چې د اسلامي امارت پر افغانستان له بیا ځـلي واکمنـۍ مخکې په هېـواد کې پـه پریمانـه ډول له افغانستان سره د بهرنیو هېوادونو، مرستندویو بنسټونو او انجوګانو له لوري مرسـتې کېدلـې چې د افغانستان نیمایي بودیجه هم ترې تمويل کېدله؛ خو له بده مرغه چې په افغانستان کې له سیاسي بدلون وروسـته پر افغانسـتان د بهرنیو هېوادونو پراختیایي مرستې په ټپه ولاړې دي او یوازې بشري مرستې کېـږي، تر څنګ یې پر بانکونو باندې بندیزونه ولګېدل او د افغانستان د ملت پیسې په بهرنیو هېوادونو کې کنګل شـوې چې له امله یې د هېـواد پر اقتصادي سـکتور بانـدې منفـي اغېزې پرېښودې؛ خو له دې سره بیا هم د افغانستان اسلامي امارت په دې وتوانېـده چې خپلـې پراختیايي پـروژې او کارونـه لـه داخلي ګمرکي، مالیـاتي، معادنو او نورو عایـداتي سر چینو څخـه تمویل کړي،لـه همدغـو لارو عواید ترلاسه کوي او پراختیایي پروژې پـرې تمویل کـوي. همداشـان اوسـمهال په افغانسـتان کې شل سـلنه برښـنا تولیدېږي او پاتې اتیا سـلنه یې له بهرنیو هېوادونو واردېږي چې **۳مخ**



## لوګر کې یو جامع جومات جوړ شو



په لوګر ولایت کـې په څلورمې منصوري لـوا کـې د ۱۱ میلیونه افغانیو په لګښت یو جامع جومات جوړ او ګټې اخیسـتنې ته سپارل شوي دي.د څلورمې منصوري لوا ویاند محمـد نوروز ځلاند باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې دغه جامع جومات د ملي دفاع وزارت د تعمیراتو ریاسـت په مالي ملاتړ جوړ شوي دي.د نوموړي په وینا، دغـه جومات پـه ۵۰۰ متره مربع ځمکه کې په دوو پوړونو کې په پاخه او اساسي توګه جوړ شوي، چې په یو وخت کې د ۸۰۰ لمونځ کوونکو د ځایېدو ظرفیت لري. ځلانـد زیاته کـړه، چـې د یاد جومات ترڅنګ یو کتابتون هم جوړ شوي دي. **۳مخ**

## له ایران او پاکستان څخه لسګونه کورنۍ هیواد ته راستنې شوې

لـه ګاونډیو هېوادونـو د افغان کډوالو د را ایسـتلو په دوام، د کډوالو او راسـتنیدونکو چارو وزارت مسـئولینو ویـلي ،چې ۷۹ افغـان کورنۍ له پاکسـتان او ایـران څخه خپـل هیواد ته راستنې شوې دي.
د یاد وزارت مسئولینو ویلي ،چې دا لسـګونه کورنۍ ورمه ورځ له دربوو سرحـدي لارو هیواد ته راسـتنې شـوې او اسـلامي امارت ورسره مرسـته کړې ده. د راپورونـو لـه مخـې، په دې کورنیو کې ۵ د کندهار د سـپین بولدک، ۴۷ کورنۍ د نیمروز د پل ابریشم له لارې او ۲۷ کورنۍ د هـرات د اسـلام کلا له لارې راستنې شوې دي.د مسئولینو په وینا، له راسـتنېدونکو کورنیو سره لومړنۍ مرسـتې هم شوې دي. په وروستیو کې له ایران او پاکسـتان څخه د افغان کډوالو ایسـتل زیات شـوي او د یادو هېوادونـو حکومتونـو ټینګار کړی، چې دوی به نور په خپلو هېوادونو کـې «غیرقانوني» ته د اوسـېدو اجازه ورنکړي. بله خوا د بشري حقونو سـازمانونو د پاکستان حکومت ته یو لیک لیـکلې او د افغان کډوالو جبري ایستل یې **۳مخ**



## ننګرهار کې پر نږدې ۲۰ زره جریبه ځمکه د مالټو نوي باغونه جوړ شوي

د ننګرهار کانال ریاسـت مسئولین وایـي، په تېرو دربوو کلونو کې یې پر نـږدې ۲۰زره جریبـه ځمکه د مالټو نوي باغونه جـوړ کړي دي.د مسئولینو په وینا، یاد باغونه پر هغو ځمکو جوړ شـوي ،چـې د کانال ریاسـت له لوري شرکتونـو ته په قرارداد ورکړ شـوي دي.د ننګرهار کانال ریاست ویاند همایون غریبمل وایي: د یادو باغونو په جوړېدو سره زرګونـه هېوادوالو تـه د کار زمینه برابره شـوې ده.(( موږ نږدې په ۲۰ زره جریبـه ځمکه کې د مالټو نوي باغونه جوړ کړي، چې د دغو باغونو پـه جوړېدو سره هم د مالټو د تولید له اړخـه خودکفا شـوو او هم ګڼ شمېر هېوادوالو ته په مستقیم او غیر مستقیم ډول د کار زمینه برابره شوې ده.))پـه ورته وخت کې که څه هم باغ لرونکي دننګرهار کانال ریاست پر ځمکـو له خپلو جوړو شـویو باغونو خـوښ دي؛ خو وایي د اوبو له کمښت سره مخ دي.تاج محمد او شیر افضل ،چې د مالټو نوي باغونه جوړ کړي، له مسئولینو غواړي چې په یاده برخه کـې ورسره همکاري وکړي. **۳مخ**



## د تورخم دروازې ترڅلو افغان او پاکستاني سوداګرو ته درانه زیانونه اړولي

د افغانسـتان د سـوداګرۍ او پانګونې خونې مسـئولین وایي ،چې له تېرو نهو ورځو راهیسې د تورخـم دروازې په تړل کېدو سره د افغانسـتان او پاکستان د خصوصي برخې سـوداګرو ته ۱۰ میلیونه ډالره زیان رسـېدلي دي. د دغـې خونـې د مشرتابه پلاوي غړي خان جان الکوزي ویلي، چې تراوسه دواړو خواوو ته نـږدې ۱۰ میلیونه ډالره زیان رسیدلي دي. نوموړي وایي، که دا وضعیت دوام وکړي، د دواړو هېوادونـو ترمنځ سـوداګري بـه صفـر شي. د ننګرهـار د سـوداګرۍ خونې مسئولین بیا وایـي، د افغانسـتان د تجارتي موټـرو په درول کېـدو سره، د تازه مېوو او سبزیو لویه برخه خرابه شوې او افغان سوداګرو ته د ورځې لسـګونه زره ډالره زیان رسـېږي. پاکستان د تېرې اوونۍ له شنبه ورځې راهیسې د سرپرسـت حکومت له خوا د فرضي کرښـې دې غـاړې ته د ځینو تاسیسـاتو جوړولو په غبرګون کې د تورخـم دروازه تړلې ده.

## پروان کې لسګونه تنه له فني او حرفوي زده کړو فارغ شول

اسـلامي امـارت د بېـکارۍ د له منځه وړلو لپـاره په بېلابېلو ولایتونو کـې زرګونو ځوانانو تـه د فني او حرفـوي زده کړو لنډ مهاله اوږد مهاله سـهولتونه برابر کـړي دي، تر څو ځوانان لـه بیـکارۍ څخه خـلاص او کارونه ورته پیـدا شي.د پروان ولایت د مسـؤلینو په وینا، څو ورځې وړانـدې ۷۵ تنه ځوانان د بېـلا بېلـو فني حرفـو له زده کړو څخـه فارغ شـوي او په کارونـو بوخـت دي.د پروان ولایـت د کار او ټولنیزو چارو رییس مولوي قـدرت الله ذاکر د هېـواد ورځپانـې خبریال ته وویل: ۱۲۰تنه ځوانان د خیاطي، موبایـل جوړولو، برق جوړولو او کمپیوټـر جوړولو په برخو کې زدکړې کوي او د همکارو بېلا بېلو موسسـاتو له خوا ۱۲۰ تنو ته د خیاطـي او نلدواني په برخـو کـې زده کـړې ورکول شوي دي. ښاغلي ذاکر وایي،چې د ۱۴۰۳ مالي کال له پیل څخه تر اوسـه پورې ۱۵۰۵ تنو ته د کار جوازونه وېشـل شوي دي او په دنده ګمارل شـوي دي.نوموړي زیاته کړه، چې په پروان ولایت کې درې روزنتونونه شتون لري چـې دوه یې امارتي او یو یې خصوصي دي، **۳مخ**




## افغان ورزشکار علي بلال د بدن د ښکلا په ارنولد کلاسیک سیالیو کې لومړی مقام خپل کړ

افغان ورزشـکار علي بلال د ۲۰۲۵ کال د بدن د ښکلا ارنولد کلاسیک سیالیو کې، چې د امریکا د اوهایو ایالت په کلمبوس ښـار کې ترسره شوې، لومړي مقام خپل کړ.
علي بلال لـه دې وړانـدې د بدن د ښـکلا په مستر المپیا سـیالیو کې دویم مقام ګټـلي و او همدا راز یې د پیټسبورګ پرو او نیویورک پرو سـیالیو کې لومړي مقامونه ترلاسه کړي دي.ارنولد کلاسـیک سیالۍ هـر کال د بـدن د ښـکلا د نامتو ورزشکار ارنولد شوارتزنیګر **۳مخ**

# بهرني لنډ خبرونه

## مصر د غزې د بیارغونې پلان بشپړکړی



د مـصر د بهرنیـو چـارو وزیـر ورمـه ورځ ویـلي، چـې هېـواد یـې د غزې د بیارغونـې پـلان بشـپړ کـړی او ممکـن د مـارچ پـه څلورمـه بـه د عـربي هېوادونـو بېړنـۍ غونـډې تـه وړانـدې شي. فرانـس ۲۴ خـبري اژانـس د مـصر د بهرنیـو چـارو د وزیـر بـدر عبدالعاطـي لـه قولـه د یـاد پـلان د بشـپړېدو خـبر ورکـړی دی او زیاتـه کـړې یـې ده، چـې دا کار یـې د امریـکا د هغـه وړاندیـز پـه ځـواب کـې کـړی، چـې د عـربي هېوادونـو لـه خـوا پـه کلکـه رد شـو. اژانـس وایـي، د دغه پـلان ترتیب پرتـه لـه دې چـې د غـزې نفـوس بـې ځایـه شي پلـي بـه شي.د مصر د بهرنیـو چـارو وزیـر ټینـګار کـړی ، چـې د غـزې د بیـا رغونـې پـلان به نـه یـوازې د مـصر او عـرب هېوادونـو وي ، بلکـې لـه بریـالي تطبیـق او ډاډ تـر لاسـه کولـو وروسـته بـه نړیـوال **۳مخ**

## د ایران د ولسمشر ستراتېژیک مرستیال له خپلې دندې استعفا کړې

د ایـران د دولتـي خـبري اژانـس ((ایرنـا )) د راپـور لـه مخـې، د ولسـمشر مسـعود پزشـکیان سـتراتېژیک مرسـتیال محمـد جواد ظریـف لـه خپلـې دنـدې اسـتعفا کـړې ده.د ښـاغلي ظریـف اسـتعفا لیـک ولسـمشر تـه رسـېدلی، خـو نومـوړي یې تر اوسـه پـه اړه کـوم غبرګـون نـه دی ښـودلی.له دې وړانـدې د ایـران د اقتصـاد وزیـر نـاصر همتـي هـم د پارلمـان لـه لـوري استیضاح او لـه دنـدې ګوښـه شـو.د ښـاغلي همتـي د اسـتیضاح لامـل د تومـان د ارزښـت کمېـدل او د بهرنیـو اسـعارو او پـه ځانګـړې



ډول د ډالـر د بیـې لـوړوالي ښـودل شـوي دي.جـواد ظریـف یـو ځـل پخـوا د زمـري پـر ۲۱مـه هـم د مسـعود پزشـکیان د کابینـې لـه جوړښـته ناخوښـي ښرګنـده کـړې وه او لـه دنـدې **۳مخ**

## اسرائیلو غزې ته د ټولو بشري مرستو د لېږدولو مخه نیولې

اسرائیـلي رژیـم غـزې تـه د ټولـو بـشري مرسـتو د لېږدولـو مخـه نیولـې او ګـواښ یـې کـړی، چـې کـه حـماس د اوربنـد د لومـړي پـړاو لـه غځولـو سره هوکـړه ونـه کـړي ښـې پایلـې بـه ونـه لـري.د صهیونیسـتي رژیـم د لومـړي وزیـر دفـتر پـه یـوه اعلامیـه کـې ویـلي، چـې غـزې تـه ټـول لېږدېدونکـي توکـي او اکـمالات بـه بنـد شي.حـماس اسـلامي غورځنـګ د اسرائیلـو دا پرېکـړه جنګـي جنایـت بللـی او لـه منځګـړو یـې غوښـتي، تـر څـو صهیونیسـتي رژیـم اړ کـړي، چـې د اوربنـد شـوې هوکـړې تـه ژمـن پاتـې شي.د یـاد غورځنـګ یـوه ویانـد ویـلي، چـې اسرائیـل د اوربنـد تړونـد ماتولـو هڅـه کـوي او د مرسـتو بندېـدو پرېکـړه یـې (( بـازاري بـاج اخیسـتنه، جنګـي **۳مخ**

